(۲) 5/1968



## ددې ګڼې مضامین





د کندهار د شهیدانو د څلور لارې په جنوبي اړخه کې د میوند رستوران ښکلې ودانۍ

۱۳۴۷
د ثور
(۲)

# د لمر پلوشي

دسمندر اوڅپو له منځ څخه دسهار درڼا یوه څپه راغله، دنیا ئې ولېدله او لګیا شوه ؛ ای توری تیارې؛ ځه او اوس ما ته ځـای پرېږده .

بیا د اوبو پرغاړه جهازونو ته ودرېده .
او په وینا شوه جهازونو شپه تیره شوه ځی لاره مو ونیسی او په تګ شروع وکړی .

ځنګلی ته په نارو شوه (وینه شه پاڅېږه چې ورځ راغله).
صحرا ته ولاړه او هلته داسې لګیا شوه جو په والو ورونه مو وتړی، او روان شی چې بیا به مو دلمر تلو مزله ته نه پرېږدی؛ ځنګل ته ئې ځان ورساوه او وئې ویل:

هلی پورته شه پاڼې ورېوه او دګهېځ هر کلی وکړه .
کلیو او بانډو ته په وینا سر شوه ؛ اې مالدارانو، مالونه مو ورشوګانو او پټیو ته بوځی چې تیاره ولاړه اود رڼا لمن هرځای وغوړېده ؛ وښو او بوټو ته ئې په غوږ کې وویل :

پاڅېږی، دلمر د راختو هر کلی وکړه .
د مرغیو په خواکی غلی تېر شوه او ورته وویل :

والوزی او وچغېږی .
مګر آه افسوس، چې دمړو پر هدیره راغله .
نو په یوه غمجن آواز ئې وویل :

ستاسو وخت لا نه دی راغلی پر بوځی، دخپلو ویښېدو او پورته کېدو تر وخته پوری وګوری .
ستاسو دخوب نېټه لا نه ده پوره شوی .

بناغلی‌م - [ع]

# ملي هنر د کلتور په هینداره کې

هر هنر چې کلتوري بنیاد ولري هغه ملي هنر بلل کیږي

څرنګه چې دلته دملي هنر او کلتور په ارتباط کې یوه مقایسوي تحلیلي څېړنه کوو، نودامقاله په دوو برخو او یوې نتیجې ته وویشو او ددې کار ګټه به نو دا وي چې د موضوع آفاقي اوانفسي حدود به نه راڅخه ور کیږي.

په لومړۍ سرکې به پر هنر ودغږېږو او بیا به کلتور په لنډ ډول تشریح کړو اوپه پای کې به د هنر اوکلتور هغه ارتباط معلوم کړو چې ملي هنر څېښې پیدا کیږي.

## هنر څه شي دی؟

داچې هنر څه شي دی، تعریفات ئې دومره زیات شویدي چې که ټول یوځای شي نو باور ارم چې خورا پنډ کتاب به ځنې جوړ شي.

ددغو تعریفاتو له جملې څخه یودالاندې تعریف دی چې د نوي مطالعې په رڼا کې یو پوهاند کړیدی هغه وایي چې:

«هنر دانساني ذهن یوه تعبیري وسیله ده، هر کله چې یو هنرمند د پر ځان مسلطو جریاناتو څخه پخپل ذهن کې د کوم حالت احساس وکړي اوبیا هغه ته دخپل نفسي انفعال پوښ وروا غوندې، دې ته نو هنر وایي».

په عمومي ډول هنرونه هغه چې د ښکلو (زیبا) هنرونو په تعریف کې داخل سویدي څلور دي چې د نقاشي یا رسامي هنر، د مجسمې جوړولو هنر ادبیات (لټریچر) او موسیقي (موزیك) څخه عبارت دی.

ددې هنرونو په جمله کې نو معماري هم ځنې کسان هنر بولي خو که ئې موږ هم داخل وبولو نود نقاشي اومجسمه سازي له ترکیب څخه راوتلی هنر به وي.

په هرصورت نن دمصري فرعونیانو اهرامونه، دچینائي مریانو په لاسو جوړسوی لوی دېوال، دیوناني شاعر[هومیر] ویاړنې (حماسې)، د میکل انژلو او لوناردو اوینچي نقاشي د برنی نی اومیکل انژلو مجسمې د شکسپیر او مولیر ډرامې او کومیډۍ، د موزارت اوشوپن موسیقي کمپوزونه، دلامارتین اوپوشکین اشعار، دچارلس دیکنز اوماکسیم ګورکي ناولونه ټوله هنر بلل کیږي.

## کلتور څه شي دی؟

د اصلي لغت په لحاظ کلتور یو انګریزي کلمه ده چې ریښه ئې لاتین ته رسیږي اوپه انګریزي کې په (کلچر) تلفظ کیږي.

د کلتور یا کلچر تعریف د نیو کالج سټنډرډ ډکشنري په ۲۸۷ مخکې داسې راغلی دی:

«کلتور یا کلچر پخپل پراخ تعریف کې د یوځای دخلکو په ماضي او حال کې د امیالو اعمالو لاسي هنرونو کرهڼې مذهب، اقتصاد روایاتو، ژبو اوافسانو ته ویل کیږي».

کلتور پېژندنه نن ځان ته پوهنه ده اوهغه خلګ چې د یوې ټولنې په باره کې اساسي مطالعات کوي نو دوی دهغو کلتور پلټي اوپردغه‌لار نوورته معلومېدای شي چې ټولنه د تکامل په کوم پړاو کې ده.

که کلتور زموږ د انساني ژوندعلمي او ذهني جریاناتو یوه هینداره وبولو نو د هنر ننداري هم پدغه هینداره کې خورابنې کولای‌سو.

## ملي هنر څه شی دی؟

موږ هنر او کلتور دواړه پوره تشریح کړل، اوس نو دې پوښتنې ته جواب ویو نکی یو، چې ملي هنر څه شی دی؟

هغه هنر چې کلتوري ریښه ولري یعنې د کلتور په هینداره کې د هغه کړه وړه نا اشنا او نا بلد او بالاخره بېګانه نه وي هغه ته ملي هنر ویل کیږي.

د مثال په ډول موږ پر موسیقی د دې موضوع تحلیل حواله کوو، موږ یعنې افغاني ټولنه لکه چې کلتور لرو نو هنر هم لرو او په هنر کې موسیقي هم لرو، او دغه موسیقي مو عوامو د زړګونو کالو راهیسې خوا را پاللې ده، څرنګه چې د دوی پر کلتوري بنیاد تکیه لري نو د عوامي ذوق پوره نمایندګي هم کوي خو که زموږ ملي ننني هنرمند د یو بل ځای د هنر په تقلید کوښښ وکړي چې د دې ځای اصلي آهنګونه د بېګانه کمپوزونو تابع وګرځوي نو دا کار تر هغه وخته پورې نه کیږي ترڅو د کلتور ټوله مشخصات ورته تبدیل نسي او دا خبره نو که د ناممکنا تو په جمله کې و نه بولو تطبیق یې فوق العاده مشکل دی که داسې وسي نو په نتیجه کې بـه د موسیقي هنر صرف په یوه محدود او د اصلي ذوقه څخه عاري کوچنۍ اقلیت کې رواج وي او نور نو تر شاد و لس لوی بهیر به نه یوازې په هغه نه پوهیږي بلکې نفرت به هم ښکاره کړي او دا هغه هنر دی چې دا هنر کلتوري ریښه نه لري او نو ځکه ملي نه بلل کیږي.

په دوهم مثال کې به په ادبي هنر کې پر داستان وغیره وغیره هغه داستانونه چې د یوه و لس د کلتوري مناسباتو معرف وي هغه د فوکلور په جمله کې راځي او فوکلور خو نو په هر ځای کې د ملي هنر و نو نخبه مشخصات جوړوي.

مثلاً زموږ د پښتو شفاهي داستانونه او کیسې زموږ خالص او بې غشه فوکلور بلل کېدای شي ځکه په هغو کې زموږ د خلکو د ژوندانه هغسې تصویرونه ځای سویدی چې زموږ د کلتور مشخص اجزاء پکښې راټول سویدی نو ځکه زموږ عوامو ته بېګانـه نه دي او د زمـانو په دوران کې ئې علاقـه ورسره ساتلې ده.

او پدې لحاظ چې کلتوري بنیاد لري نو موږ ئې ملي هنر هم بللای شو.

اوس نو که موږ نوي لیکوال او هنرمند هر څو نه زور و لګوي چې د یو بل کلتور د تسلط پـه چوکاټ کې کوم داستان چې هنري او ادبي صبغه هـم ولري منځ ته راوړي هغه بـه د عوامو د لوی اکثریت له خوا د یو بېګانه متاع په حیث قبول سي خو خپل به یې و نه بولي ځکه په هغه کې به د ملي هنر شکلاً موجوده نه وي او علاقه مندي به هم جلب نکړي.

د دې لپاره چې د غلط فهمي ازاله سوې وي نو دا خبر باید یاده شي چې موږ د ملي هنر نخبه اثار په و لس کې پیدا کـولای شو او څرنګه چې هغه پر کلتوري بنیاد ولاړ دی، نو د لته زموږ لایق لیکوال او هنرمند ته دا حدود معلومېدای شي چې خپل نو کلتور ته باید په څه ډول نـوی رنګ ورکړي ترڅو له هغه څخه د ملي هنر معرف یو اثر جوړ شي.

همدا ډول کله چې په نوي پیرایه یو هنري اثر منځ ته را باسي هغه باید د ټا کلې ټولنې پر کلتوري بنیاد ودروي او هر څو نه چې د ټولنې په کلتور کې یو هنرمند پوه او وارد وي. په هغه سویه د ده اثر د ټولنې د خلکو په ذهني تکامل کې اغیزه پر یباسي او د «هنر او اجتماعي ژوند» د اثر د لیکوال لدغه خبري سره ملي هنر د ټولنې په انکشاف کې تاثیر کوي چې وایي: «ټولنه د هنرمند لپاره نده جوړه سوې بلکې هنرمند د ټولنې لپاره جوړ یږي، دا د هنر وظیفه ده چې د انساني استدراك په انکشاف کې مرسته وکړي ترڅو اجتماعي سیستم کمال ته ورسېږي».

د محمدگل [نوری] ژباړه

# کندهار

## جغرافیایی اوضاع :

په افغانستان کی تر کابل وروسته لوی ښار کندهار دی چی د لرغونی اراکوزیا، یا اراچوسیه، یا د عربو د جغرافیه لیکو نکو اومؤرخینو دلیك په قرار دالرخج، یاالرخذ مرکز دی.

دگرینویچ څخه دشمال غربی په (۳۱) درجو او (۳۷)

دقیقو کی، او په شرقی طول کی په (٦۵) درجو او (۴۳) دقیقو کی واقع دی، اود

دریاب دسطح څخه ۳۴٦۳ فټه لوړ دی.

کندهار، د زرغون او حاصلخېزو مځکو په منځ کی د ترنك د وادی ترپای واقع او له رود څخه په

همدغه نامه سره دړو، وړو غرو په واسطه سره جلاسوی

دی، همدغه غرونه ددې وادی کښته برخه پردوو

برخو ویشلی او سیخ دغرو سره تر شل میله پوری اوږده

سوېده دغه غرونه دتور کافی غرونه بولی اود مځکی دسطح څخه یوزرفټه لوړدی.

کندهار، د درو خواو څخه لوړو، لوړو وچوغرو احاطه کړیدی.

د کندهار سیمه خورا ډېره فوق العاده حاصلخېزه او تر وتازه

زرغونه مځکه ده او خورا ډېر د ډول، ډول انگورو اونورو

مېوو باغونه پکښی سته، ددې آبادی او مېرې مځکی د سهېل او

لمر لوېدیځې خوا ته ډېری ودانی سته، لېکن شمال لوېدیځه

خوانۍ وچه اود غرو ددوو لړو په واسطه چی د مځکی د سطح څخه زرفټه لوړ دی تړلی ده، ددې

سلسلی په شمال لوېدیځه خواکی یو د اوبو مخزن دارغنداو اود ترنك دعلاقو تر منځ جوړ سوی او

په پای کی د هزاره ؤ پر لویو غرو تمامېږی، همدا غرونه دلو ېدیځ سهېل خواته تللی او په رېنگ

پوری مښلی، دلوېدیځ د شمال څخه د کابل سړك شروع کیږی دا

یوه لرغونی او تاریخی مشهوره دهندوستان لار ده چی د خواجه عمران یا (خوجك) د سلسلی تر پای

تېرېږی چی یوه بغل ته ئې په لږ فاصله سره «پښین» دی.

د خواجه عمران کوتل قریباً ۲۳۰۰ فټه لوړ دی منگر دلته ئې غر سوری کړی چی د اورگاډی لین د چمن څخه

ترکوټې پوری مښلوی اود کندهار څخه و هندوستان ته څو نوری لاری هم په بلوچستان کی تېری سوی دی.

کندهار، د کابل څخه ۳۱۵ میله، اود هرات څخه د لوېدیځ شمال په خواکی دی ۳۷۰ میله فاصله لری اود چمن

څخه چی ښخی نژدې سرحد دی ۸۰ میله فاصله لری، د کندهار اوسنی ښار په مستطیل ډول سره دی چی

پسور او اوږده ئې دوه زره گزه په ۳٦۰۰ گزه کی دی چی شاوخوا محیط ئې قریباً څلور میله دی.

دغه ښار څلور بازارونه لری چی په مرکز کی یو د بله په یوقائمه زاویه سره قطع کیږی چی پخوا پردغه

مرکز یوه لویه تاریخی گونبته ولاړه وه.

د کندهار بازارونه ډېر اوږده او پراخه جوړ سوي او دکانونه ئې یو لین دي.

د کندهار د ښار ودانۍ د ګنبدتو په ډول جوړې سوې

هغه لویه مهمه ودانۍ چې د معمارۍ د ذوق نمایندګي کوي د احمدشاه بابا د زیارت ګونبته ده چې د دې ښکلې ګونبتې پر شاوخوا لوی او کوچنی مناري راګرځېدلي او پدغه ګونبته کې د خطو او نقاشیو ښې، ښې نمونې سته.

او څلور دروازې لري چې د کابل دروازه، د ښکارپور دروازه، او د عیدګاه دروازه ئې بولي، دغه ښار دوې نورې کوچنۍ دروازې هم لري چې د لوېدیځ په نیمه برخه کې دي، چې یوه د توپخانې دروازه، بله د برو دروازه ده. د عیدګاه و دروازې ته د ارګ تر څنګ لاره تېره سوې ده چې دغه یو چارګونجه محوطه ده چې هره خوا ئې ۲۶۰ ګزه اوږدوالی لري.

د کندهار و اوسني ښار ته نژدې قریبا څلور میله لیرې د زاړه ښار خرابې دي چې دغه زوړ ښار په ۱۷۳۸ میلادي کال کې د نادر افشار له خوا تاړاك او خراب سو.

دغره پر سر باندې لکه لاندنۍ خرابې یوه خرابه د یوال غوندې خرابې سته.

د ښار د لوېدیځ جنوب و خوا ته دغره د ختیځ شمال لوري ته څهل زینه ده چې په لویه اهاکې ډبره کې جوړې سوې او پای ئې پر یوه ډبرین دالان باندې تمام شویدی پدې دالان کې درې برجسته خطونه کیندل سوي چې د تاریخ لړ بیان او د بابر د امپراطورۍ د سلطنت د وسعت شرح ده.

کندهار د افغانستان لوی تجارتي مرکز دی چې په بازارو کې ئې د نورو هېوادو تجارتي مالونه پلورل کېږي.

کندهاریان په تجارت کې ښه پوهه او استعداد لري. د کندهار عمده او لوی واردات: ټوکران، څرمني، قند، فلزات رنګ دي؛ غالۍ، برك، پوستین وریښم او نور له دننه ولایاتو څخه لکه: کابل، هرات او غزني واردوي.

صادرات ئې: وړیه، پنبه، مېوه وریښم، انګوزه او نور.. دي.

نن ورځ د کندهار لوی تجارت وړیه او مېوه ده. د کندهار د مېوې فابریکې ډول، ډول کانسروه او شیریني تهیه کوي، داخل او خارج ته ئې صادروي.

که څه هم د کندهار علاقې د سهېل او لوېدیځه خوا ډېره تروتازه او حاصلخېزه ده، مګر د ارغنداو خواوې داسې زړه وړونکې منطقه ده چې ډېرې ښې رواني اوبه او ډېر خوږ مېوې ولي، او د انګورو باغونه پکښې سته چې اغلبا جوړه لري.

د کندهار د شاوخوا مځکې د هغو ویالو څخه اوبېږي چې نژدې د بابا ولي صاحب سره د ارغنداو د رود څخه کښلي سویدي او د کاریزو په اوبو هم ډېره مځکې اوبېږي.

په کندهار کې غنم اوربشې، جوارې، باغلې شوتل، شپشتي، تنباکو او پالېزونه ډېر کرل کېږي او ترکاري او سبزي هم ډېر پکښې کېږي. کندهار د خوږو مېوو د نقطه نظره د افغانستان هغه غوره منل سوې منطقه ګڼله کېږي.

د کندهار نوم:

د کندهار نوم په قدیمو

تاریخو کې وجود نه لري داسې څرګندیږي چې یو نوی نوم دی چې پسدې وروستیو وختو کې میدان ته راوتلی دی.

دمخه تر اسلام په تاریخي اسنادو کې دغه نوم بالکل تری‌تم او په تیاره کې دی په اسلامي عصر کې یو ډېر شمېر جغرافیه لیکونکي او مؤرخین سته چې د یوه ښار یا یوې قصبې یا کلي نوم پدې منطقه کې پدې نامه کوم ځای ندی یاد کړی.

د عربو ځینې جغرافیه لیکونکي لکه: بلاذري مسعودي، یعقوبي، دا نوم یادوي، لېکن ددوی مطلب ددې نامه څخه هغه ښار دی چې د کابل په مصب کې دی د سیستان او حدودالعالم-من المشرق الی المغرب په تاریخ کې همدغسې دی اصطخري او ځینې نور د الرخج او الرخذ څخه ددې منطقې عمده ښارونه پنجوائي او تګین آباد لیکي همدغه ولایت چې نن ورځ د کندهار پنامه یادیږي او عین همدغه نوم چې پر مرکز ئې اینبوول سویدی آراکوزیه نومېدی.
هرودوتس هغه مراواتي او نوریونانیان هغه آراخز بللی دی.

«ولسن» په خپل کتاب (آریانا-انتیکوای) کې د کندهار په نسبت وایي: چې پسدې ښاروکې چې «پوتولمي» ئې پدې ولایت یادوي یو الکذاندریه دی چې عموماً هغه موجوده کندهار تصور کوي داچې همدغه نوموړی ښار د مقدونیې پرلار سته، شك پکښې نسته یوه ډله لیکونکي دا عقیده لري چې د کندهار نوم د الکذاندریه څخه اخیست سویدی، پدې معنا چې اسکندر په ۳۲۹ ق م کال کې چې وارا کوزیه ته ورسېد، نو د خپل عادت سره سم ئې یوه نظامي کلا دخپلو یوناني لښکرو د پاره جوړه کړه، نو دوی همدغه کلا کندهار ګڼلي دی او وایي چې اسکندریه کندریه، کندار، کندهار شویدی

او خپل سند هغه محلي مـلـي افسانې بولي چې وایي کندهار سکندر ذوالقرنین ودان کړیدی مګر غالب ګمان دغسې نه دی چې د کندهار نوم دې د ګندهارا سره مستقیم ارتباط ولري، او مستر بیلو هم پدغه عقیده کې یو تفصیل لري ځکه چې ۵۴۰ م کال چې «چیني-زائر سونګ یون» و ګندهاره ته راغی دده د یادښتو په استناد پدغه عصر کې ایفتالتیانو پر ګندهاره یرغل راوړی نو د ګندهاره یوې ډلې وګړو دیفتلي دلاسه د بوداد کچکول دساتنې په غرض و آراکهوزي ته راغلل چې غالباً د کندهار د قدیمي ښار پر ځای ؤ، د کندهار نوم ئې هم لهځانه سره راوړ او پر هغه ځکه چې دوی ودان شوه کښېښود او په باختري ځکو کې دا مسئله ډېر مثالونه لري، نو همدغه ګندهارا نوم ؤ چې کندهار شو، مګر څرنګه چې شهرت ئې نه درلود نو د عربو د جغرافیه لیکونکو د نظر څخه پټ پاته شو، ځکه چې پدغه مهال کې د پنجوائي د منطقې مهم ښار او تګین-آباد ؤ.

هو، پدې کې شك نسته چې کندهار، د کلي او قصبې او ښار په نسبت کوچنی او کم اهمیتی ئې درلوده او فردوسي هم دغه ته اشاره کوي وایي چې د زابلستان پاچا کورنګ شا کندهاري مېنځه درلوده.

دی وایي:

بدش قندهار بت قند لب
که ماه از رخش خیره گشتی به‌شب

منوچهر دامغاني هم وایي:

«یا قند لب نگاری کز قندهار باشد»

زابلستان عبارت له غزنی او شاوخوا منطقو څخه ګڼل

دی غالباً تر کندهار پورې د ګندهار یا کندهار کوچنی ښار کې چې دده په مملکت کې ئې په ښایست او ښکلیتوب

شهرت درلود، نو ویلای سو چې د کندهار نوم ډېر تازه نوم دی.

## د کندهار تاریخ:

تردې ځایه چې مو د قندهار د نامه په شاوخوا کې څېړنه وکړه لا هم پوره نده، نو ځکه دلته ئې پردغه

ځای پرېږدو، اوس به نو کندهار ترڅپله وسه پورې د تاریخ په نقطه کې وپلټو چې دحوادثو او پېښو سېلابو

ددې ښار پر سرنوشت څه تاثیر کړی دی.

که څه هم زما مطلب د کندهار د تاریخ د تعقیب او څېړنې څخه دادی چې تاریخ ئې مفصل ولیکو، منګر عرنګه

چې دغه ټوله مفصل بیان پدې محدود پاڼو کې نه ځائیږی

نو ځکه په مجمل ډول او سر سر کې پرتېرېږو او د اصلی مقصد تکمیل او پوره څېړنه

وآینده ته پرېږدو.

د کندهار ولایت چې لرغونی نوم ئې هرخواتېش دی چې هرودوتس هغه هراواتی، او نورو یونانیانو اراخزیا ځینی

جوړه کړیدی، یو د شوره ډک تاریخ لری، هغه بېخی لرغونی تاریخ ئې تر اوسه پورې لا په مجهولو پردو کې پټ پاته دی، د قدیمی

آریانا د سلطنت تر سقوط او د پېشدادیانو او بلخی کیانیانو د سلسلې تر انقراض وروسته په مدیا کې د (ماد) دولت، او په فارس

کې د (هخامنشی) دولت تاسیس شو.

فارسی «کوروش کبیر» اته کاله د آریانا د ولایاتو د تسخیر د پاره کوښښ او هاند وکړ منګر څه لاس ته ور نغله بې نتیجې پاته

شو، په پای کې د افغانستان د لوېدیځو قبایلو سره په جنګ کې مړ سو، منګر تر ده وروسته آریانا ی ولایات هسې په نامه د هخامنشی

په دولت پورې وتړل شول، او په هر ځای کې محلی حکمدارانو په مستقل ډول سره ژوند کاوه، په

هغه مهال کې چې د «کوروش» زوی «کمبوجه» د مصر په حوادثو او جنګو کې بوخت سو، نو یو

«بردیا» نومی سړی میدان ته راووت او دده پرضد ئې شورښ وکړ، ټوله سرداران ئې خپل

طرفداره کړه، د «کوروش-کبیر» د زوی په نامه (بردیا) د فارس پاچا سو، پدې مهال کې د فارس د دولت اوضاع

خرابه سوی وه، په زیاته بیا د آریانا نامفتوحه ولایاتو خپل ټوله ارتباط د فارس د مرکز څخه پرې او قطع کړی وو.

(بردیا) د (هرخواتېش) یعنی اراکوزیه د مطیع او نیولو د پاره لښکر ولېږیه منګر د هغو محلی حکمران

چې ډېر زورور او قوی ؤ دوی ته ئې ماتی ورکړه (داریوش کبیر) (بردیا) ئې وواژه او پر آریانا ئې د

د لښکر ویرغل وروړ. د سیند تر رود پورې ئې شاوخوا ځمکې لاس ته راوستی چې پدې کې اراکوزیه هم شامله

وه، منګر هرکله چې د هخامنشی دولت اقتدار ورځ په ورځ کمېدی په زیاته بیا د دریم داریوش په وخت

کې نو پدې مهال کې آریانا په کامل ډول مستقله سوله د آریانی دولت حکمرانانو چې د هخامنشی دولت مخ

پر زوال لیدی، نو د خپل کار د چاری په لټولو کې شول. د باختر حکمران (بسوس) له یوې خوا، او

بارسانتس د رنګیانا او اراکوزیه والي د بلې خوا د سلطنت په چرت کې شول هغه مهال چې د ګوګاملا جنګ د هخامنشي د پاچا د ماتې سبب وګرځېدی، نو بسوس د آریانا د پاچهۍ خول په باختر کې پر سر کېښېښود. بارسانتس چې جدي همخیال ده د بسوس ؤ د رانګیانا او اراکوزیا لوري ته راغی چې د خپل دولت سرښته وکي، منګر دا ټوله پلانونه د مقدوني سکندر د لښکر کشي په اثر ناکامه شوله، پدغه مهال کې د اراکوزیا او درانګیانا ولایات یو د بله په اتفاق د یوه حکمران تابع وه چې بارسانتس نومېدی دغه سړی د خپل وطن د خلاصولو په باره کې ډېر هاند وکی او یوازني آرزوني داوه چې د فارسي هخامنشي د دولت سره رابطه قطع سي له همدې کبله په ۳۳۰ ق م کال کې دریم داریوش د بلخ د حکمران بسوس په اتفاق د هخامنشي پاچا له منځه یووړ.

دسکندر راوړ دده قوي لښکر و د نابېري حملې پروپاګند ډېر بد انعکاسات میدان ته راوستلی وه، نو پدغه بحراني مهال کې ئې د رانګیانا او اراکوزیه حکمران لاس ؤ پښه کړی بارسانتس چې د سکندر د زور او دده په لاس د فارس د دولت د سقوط څخه خبر ؤ او پر هرات باندي د سکندر د حملې او یرغل او د هغه ځای پر اهالیو دده د وحشیانه رفتار څخه پوه ؤ په ځان کې ئې دونه ډېر ونه لیدی چې دده مخه ونیسي، نو ځکه د غرو او درو دلار و څخه وهندته ولاړ، د درانګیانا او اراکوزیا ولایات ئې بې سرپرسته پرېښوول دادواړه سیمې د سکندر بې خنډه په لاس ورغلې.

د نن ورځې معلومات خو تر اوسه ناقص دي، نو دا نسوای ویلای چې په هغه مهال کې چې سکندر د اراکوزیا سیمې ته ننوتی آیا د مقاومت او مقابلې سره مخامخ سوکه یه؟

په هر حال هر کله چې سکندر داراکوزیه سیمې ته ننوت نو یو په بل پسې ئې ښارونه ونیول، هغه خورا مهم ښارونه چې د سکندر پېښو لیکونکي بطلیموس ثبت کړیدی دادي: آزولا، یا اوزولا، فوکلیس اراکوتس.

و اسکندریه: کنګهم آزولا په لوړ هلمند کې ګڼزي، یا ګذارستان، او فوکلیس دیمتریاس ګڼي.

یو بل مؤرخ ایسیدور څو نور ښارونه هم په ګوته کوي لکه: بیوت، فرساګ، کوروشاد، دمتریاس، او الکذاندروپولس چې د ولایت پایتخت او داراکوتس یعني ارغنداو د رود پر غاړه ؤ، او بیوت عبارت له بست څخه بولي.

د تاریخ د مطالعې څخه څرګندیږي چې تر دغه زیات چې وموویل سکندر نور وګړي هم د اراکوتي په نامه تر ګوتو او خپل تابع ئې کړل، دغه وګړي یعني اراکوتیان هغه وګړي وه چې د کندهار او د ارغنداو د رود په شاوخوا کې میشت وه.

یوناني مؤرخین چې دغه ښارونه یادوي، ددغو څخه مونږ په صحیح ډول نسوای ویلای چې کوم ښار د ارغوني کندهار پر ځای ودان ؤ، منګر دونه قدر ویلای سو چې داراکوتس ښار چې په اراکوتیانو پوري اړه درلوده او داراکوتس د رود پر غاړه ؤ ممکن چې د کندهار قدیم ښار وي (هغه هم

پدې شرط او پدې صورت چې دارغنداو رود لومړی مسیر پرځای فرض کړو) نو داغالباً پنجوائی دی.

په هر حال قدیم کندهار که اراکوتس یا پنجوائی وی که نه وی یقیناً وکندهار ته نژدې د ارغنداو د رود پر غاړه ښار موجود ؤ.

لکه چې د سکندر عادت ؤ چې د خپلو یونانی لښکرو او عسکرو دپاره ئې نظامی کلاوی جوړولی، او هغه به ئې داسکندریې یا اراکهوزی په نامه بللی، یونانی مؤرخینو سم له خپله عادته سره دغه کلابنار بلله همدغه اشتباه ددې سبب سوه چې تر ننورځې پوری اروپائی او شرقی مؤرخین پر خطا تللی او وایی چې: د کندهار د بنسټ ایښوونکی او بانی اسکندر دی.

د ۳۲۹ ق م کال په دوبی ددې ښار د پوالو نه په پوره کافی پول لوړ وه چې سکندر (ممنن) ددې ښار والی مقرر کړ، او یو شمېر عسکر ئې هلته میشت کړل او د کابل وخواته وخوځېدی. د سکندر تر مرګ وروسته دده د پراخ دولت پر تقسیم او وېش باندی دده د عسکری سردارانو په ما بین کی هرج ومرج جوړ شو او ددوی هر یوه د سکندر پرځای د ناستی دعوه کوله په ختیځو سیمو کی سیلوکس خپل اعتبار ټینګ کی او کار ئې ښه مخ ته ولاړ، په آریانا کی محلی حکمرانو داوخت غنیمت وګاڼه پدې چرت کی شول چې یونانی نفوذ له منځه یوسی، هغه یونانیان چې په افغانستان کی پاته وه، هغه هم ددې محیط تر اثر لاندی پدې فکر کی سول چې خپل روابط د بابل د مرکز څخه قطع کی، د بومی حکمرانانو د جملې څخه چې پدې مهال کی ئې د آریانا پر ولایاتو حکمرانی کوله پدې ډول دی:

سیبرتیوس د اراکوزی او ګدروشیا (د کندهار ولایت او بلوچستان) ستاساندروس د آریا او درانګیانا، ستازانور د باختر اوسغدیانی حاکم ؤ. داټوله بدې پسی شول چې دلاسه تللی اقتدار او قوت بېرته لاس ته راولی، او تریوې اندازې پوری موفق شول

پدې ترخ کی په هند کی د موریا دولت تاسیس شو، او دغه سلطنت د بنګال څخه تر اندس پوری پراخ شو. سلیوکس ودې کار ته کتل همدستی چې مناسبه موقع ئې د موندل وشرق ته راغی منګر ماتی ئې وخوړل مجبوره سو چې دپاروپانیزادی، آریا، او اراکوزیه او ګدروشیا ولایات و چندراګپتا ته پرېږدی تردغه وروسته څوعمر اراکوزی او د آریانا ځینی ولایات د موریا د دولت په نامه مطیع سول.

پدې ترخ کی د باختر حکمران دیودوتس د بابل د یونانی پاچا دریم (انتی-اوکس) سره رابطه قطع کړل ۲۵۶ ق م؛ دوهم دیودوتس په ۲۳۵ ق م کال کی و سلطنت ته ورسېدی؛ دریم انتی اوکس چې د پارتیانو سره د جګړې په حال کی ؤ سوله ئې وکړه، او په ۲۰۸ ق م کال کی ئې پر باختر یرغل وکړ پدې مهال کی په باختر کی یوتیدیموس، دوهم دیو-دوتس وواژه او د باختر پاچا سوی ؤ. دریم انتی اوکس باختر محاصره کی، دغه محاصره تر ۲۰۶ ق م کال پوری اوږده سوله او په پای کی د دواړو خواؤ په منځ کی سوله وسوله او دریم انتی-اوکس د کابل دلاری و اراکوزیه ته راغلی او سیستان ئې طی کړ د بابل خواته ولاړ.

(پاته لری)

عبدالصمد [فدا] ژباړه

# دافغانستان سیندونه

«۳»

## د لوره سیند

دغه رود چې دافغانستان دجنوبي سیمو دسیندونو له جملې څخه دی اودغه هیواد دجنوبختیځ په څنډه کې پروت او دپښین له ناوې څخه تېر سویدی دمځکو داوبه کولو لپاره په کوم درد نه خوري ځکه چې ددغه سیند داوبو سطحه لوړه او دځرمه مځکو څخه کښته ده ۰

ددغـه رود اوږدوالی تقریبـاً دوه میله دی او د هامون (کوره) په منځ کې چې دافغانانو اوبلوڅستان سرحد دی تېر سوی او ور تو ئیږی ۰

## خاشرود

دتور غره د جنوب پلو دلوړځایو څخه دغه سیند راغلی او پردغه لار په حرکت کې دی دهمدغه رود منبع او سرچینه ۹۰ میله نژدې د هرات وجنوب اوشرقي سیمې ته واقع دی او دلارام ته قریب د فـراه ولایت تـه داخلیږی ۰ له ۱۵۰ میلو ـا نې د طی کولو څخه وروسته د ګرمسېل سیمې ته ور ځی لدغه سیند څخه ډېر ځله دمځکو داوبه کولو لپاره استفاده کیږی او دده نوم د (دهی) له نـوم څخه مشتق اوجوړ سویدی ۰

داهم باید ووایم چې په دوبی کې لدغه رود څخه تېر بدل اسان دی، مګر د طغیان په موسم کې لدغه سیند څخه تېر بدل ګران او سخت کـار دی، ولې چې د اوبو فشار پدغه موقع کې ډېر تېز وی ددغه رود بروالی په فراه کې ۱۰۸ متره او ژور تیائې یو متردی ۰

خاشرود وهلمند او هامون ته نا رسیده دچخانسور په اطرافو کې په ځوښاخو وېشل کیږی او په عمومی توګه وهلمند او هامون ته توئیږی، اوږدوالی ئې تقریباً ۴۰۰ کیلومتر دی ۰

## فراه رود

دغه رود دتور غره له لمنو څخه راځی چې اوږدوالی ئې له ۵۰۰ مترو څخه زیات دی. دغه رود دځو رودخانو څخه لکه غور او داسې نور چې له بېلو، بېلو درو څخه تشکیل سویدی د فراه رود د شمال اولو یدیځ خواؤ څخه وهلمند اوهامون ته توئیږی ۰

## د هاروت رود

دهرات دجنوب او او یدیځ خواؤ دغرو څخه راغلی دی او په همدغه لارو بـاندی جریان لری ۰ دغه سیند دهرات دسبزوار څخه تېر بـږی او بیا نو دادرسکن ناوې ځې وبه کوی وروسته نو بیا پدغه نامه سره یاداو مشهور کیږی

کوم وخت چې دده بل مرستیال او معاون چې د آناردرې له غـرو څخه راتـو ئیږی هم پدغه ځای کې ګډیږی او د هاروت رود نـوم ځان ته پیدا کوی ۰

د هامـون د شمال او لو یدیځ خواؤ څخه وهلمند ته توئیږی ۰

د هاروت سیند هغه د فیضه ډک رود دی چې له ده څخه یو شمېر ویـالی کش سویـدی چې خپله سبزوار دهغه شاو خواتر اناردرې

پوری لهدغو ویالو داوبو څخه استفاده کوی.

ددغه سیند اوږدوالی ۴۳۱ کیلو متر دی.

## هریرود

ددغه سیند رودخانه ۵۳۰ میله ده چی ددایزنگی له غرو څخه د ۱۰۰۵۰ فټه په اندازه لوړ او بندی ددغه وروستی برخه د (کوه بابا) لهغرو څخه تشکیلوی او هم له هغه ځای څخه سرچشمه اخلی ددې رود خانی منابع او کومکیان ئی خورا ډیر دی. لدغه جملی څخه دوې رودخانی چی د هریرود موجودیت لههغه څخه صورت نیسی هغه عبارت دسرجنگل او تنگل آب دولی دسپین غره دخج گوټو سره تړلی دی.

چی (چهل برج) د هغه نومونه دی. دغه سیند خپل حرکت ته په مستقیم ډول ادامه ورکوی چی دوهم منبع ئی دچل آب لهدرې څخه پورته کیږی. ددغه رودځای فاصله یوسل میله دلوېدیځ لورته په مساوی ډول جریان لری او ددولت یارد کلی په شاوخوا کی چی ۸۱۱۷ فټه لوړ دی پدغهځای کی یوځای کیږی اود هریرود رودخانه پهوجود راودی بیا لدغه ځای څخه تېر لههغو مرستیالانو چی دشهرك او تولك څخه راځی او هلته تو ئیږی اود انجیل د رود په شاوخوا کی د کرخ سیند وهغه ته ورتو ئیږی. ددغی رودخانی عرض له ۳۳ څخه بیا تر ۴۳ متره پوری دی ولی د واوری د ویلېدو په وخت کی د سړی تېرېدل لدغه رود څخه مشکل او گران کار دی لدې امله چی ددغهسیند اوبه جگیږی مگر داوبو دلږېدو پهوخت له یو نیم متر څخه تېری نهکوی.

هریرود دښار لهجنوب څخه څلور میله تېرېږی او پهزندهجان کی چی د هرات پهٔ ۳۰ میلی کی واقع دی وشمال او لوېدیځ لورته متوجه کیږی بیا نوله کهسان څخه تېرېږی د ایران په سرحد کی چی په (توماناغا) سره مشهوره دی ورسره تماس نیسی د هریرود سیند لدغهځای څخه مخ دشمال وخواته کږیدی اوددوالفقار تر کوتل پوری چی نژدې ۶۰ میله فاصله دافغانستان او ایران دهیوادو دسرحدو په منځ کی ده، دغهروددخپل جریان پهوروستی برخه دتجن درود په نامه یادیږی او بیا ئی دخوارزم ریگستان جزب کوی.

هریرود پخوا ډیر اوبد او دجیحون لهرود سره یوځای کېدٔ ولی کوم وخت چی ځینی ځانگی داوبو لگولو پهمقصد ځینی جلاسوی نو په کښته برخه کی ددغهسیند اوبه لږیږی دغه ددوهمی ښیر که پوری وجود درلودی.

هریرودنژدې ۲۰۰ میله لهختیځ څخه د لوېدیځ لورته جریان لری اوهغه اکثره ځایونه دهرات له حاصلورکونکو اوتازه ناوې له میانځ څخه تېرېږی.

د نزهةالقلوب دلیکنی لهمخی چی وایی لدغه سیند څخه نیمهویٔ لی کش سویدی چی نومونه ئیدادی:

آذربائیجان، جوی نو، لنگرگان، کراغ، غوسمان، کنگک، لقصر، انجیر (انجیل) یادشت، د هرات دسیمی د نامداری موجبه وگرزیده چی د هرات ناوه د منځنی اسیا دباغونو اوآسیاکور گڼلی شو.

د هریرود فیض او برکت نهیوازی داچی دهرات په ناوه پوری منحصر دی حتی په شمالی برخو کی د تجن او سرخس ځمکی دغه رازخړوبهکوی.

د همدغه رود د معاونین او مرستیالان د ایران په خاوره کې عبارت له دغو رودونو څخه دي:

لومړی د «کشف رود» چې سرچینه ئې د «ارترك» او سرچشمې ته نژدې د هزار مسجد په غروکې ده چې د

چناران او رادکان له اوبو کولو څخه د مشهد له شمال څخه تېر اود «خاتون» په پله کې او هریرود ته شپوه کېږي.

دوهم. د «جام سیند» دی چې د «بلوك» د (جام) له اوبه کېدو څخه پس او هریرود ته ئیږي.

دریم. د «باخزر» رود دی چې د دغې ناحیې له شمال څخه تېرسوي په (تومان-اغا) کې تو ئیږي.

### مرغاب سیند

ددغه رود اوږدوالی ۴۸۵ میله دی چې سرچشمه ئې د تېر بند او فیروز د غرو له ښاخو څخه ده او په منظم

ډول د لوېدیځ لورته دغې لویې ناوې چې دغرو دواړه سلسلې سره جلا او بېلوي جریان لري هغه وخت چې دده د معاونینو زیاتي او به په ګډیږي. لوېدیځ او شمالي طرفونه اختیاروی او له (بالا-مرغاب) څخه تېر اود (مروچاق) په برخه کې نور معاونین ورسره اضافه کېږي، بیا د (کرشان سیند) چې د (ماورا) د سرحد کرښه ده

دفیروز دغره له ښاخو څخه چشمه اخلی او بیا پـه ده پوری تړل کېږي.

په (آق تپه) کې د (کشك سیند) چې د کوه سیاه او (بوك) له غرو څخه راځي او د (تیپه) له سیمې څخه تېریږي بیا نو بیرته پریاد سوی سیند با ندې ګډیږي.

په مروچاق کې د مرغاب سیند نژدې ۱۵ میله ده چې د افغانستان او روسیې د سرحد نقطه ده پنجده او آق تیـپه چې د رود خانی کیڼ خوا د شوروی اتحاد

په دننه خاوره کې واقع ده او له آق تیپې څخه د مرغاب سیند د شمال لورته په حرکت کې دی او و (مرو) ته ځي وروسته نو بیا د

(قراقوم) په ریګستان کې جزب کېږي. دغه رودخانه د ریګستان د حاصلخېزو ځمکو څخه تېریږي په پسرلي کې ئې ا: به ډېرې دي ولې د کرهڼې او زراعت په وخت کې مخ په کمېدو وی ددغه سیند حرکت او جریان تېز دی او ژور تیا ئې پوشی ده.

### آب سفید سیند

دغه سیند د (تېر بند) له غره څخه پردوو ښاخـو ویشل کېږي او په سرپل کې دده بل معاون او مـرستیال چې د سنګك چارك څخه راځي اود

هغه سره تړل کېږي وروسته نو په آب سفید سره مشهور کېږي له شبرغان څخه تېریږي او په دښته کې جزب شي.

ددغه سیند اوږد والی تقریباً ۴۰۰ کیلو متر دی.

### قیصار رود

دغه یو وړو کی سیند دی چې د میمنې له شاوخوا څخه تېرسوي او له دولت-آباد څخه تېریږي او په دښت

کې جزب کېږي، اوږدوالی ئې تقریباً ۴۰۰ کیـلو متر دی.

### آمو سیند

دغـه رود چې زموږ د ګران هیوا د افغانستان له نامتو او سترو سیندو څخه د (آموسیند) دی چې تقریباً

۴۰۰ میله د ننني افغانستان د شمالي سرحد خـوا کې د شوروی اتحاد سره تشکیل شویدی.

دده لومـړنی منابـع (قـلات) د کوچنی پامیر ارتفـاع ده چې د ژمی په

موسم کی یوه لویه ذخیره دواوړو اویخ ده.

د آمو سیند یو لرغونی اوتاریخی حیثیت لری اویو شمېر پخوانی نومونه لری چی د هغه یونانی نومونه دادی :

(اوکس) دی چی له (وخشو) څخه جوړ سویدی اود (وهرود) په څنګ کی اوپه چینی ژبه کی (ورهو)

یا کوی شو، ورته ویل کیږی د نوموړی سیند رودخانی اوږدوالی له یوزرمیله څخه زیات دی. وروسته ددغی

مسافی له طی کولو څخه د (آرال) و ډنډ ته توئیږی اودغه سیند د جریان په شروع کی له دوو رودخانو څخه

دواخان او پامیر څخه تشکیل سویدی چی لومړی ئې د واخان له درې څخه تېرېږی اودوهم ئې د وکتوریا یعنی

لوی پامیر د ډنډ له شاوخوا څخه راغلی دی اود واخان شمالی سرحد له هغه ځای تشکیل سویدی، وختی چی

دواړه رودونه یو د بله سره ګډ شول (آب پنجه) کیږی

چی حرکت ئې وجنوب او لوېدیځ لورته دی، او د اشکاشم په برخه کی شمالی

طرف اختیاروی او د خپل نامنظمه خط په تعقیب سره د (غندو) او (آقسو) د سیندو د شمالی بناخونو طرف ته

اوبیله دماورالنهر دافغانی سرحد خط کی وهغه ته ورتوئیږی اود (کوکچه) سیند دهیواد په دننه کی د آمو

د سیند سره نښل او منډول کیږی. د کوم ځای څخه چی ۳۷ درجی د بروالی کرښه

قطع کوی نو د کندوز رودخانه په هغه کی توئیږی.

په دغه وخت کی د (واکش) اووروسته بیا ځینی رودونه په هغه سره نښل کیږی.

اود (ترمز) په څنګک کی د (سرخان) سیند د هغه سره یو ځای او ضمیمه کیږی.

له ترمز څخه بیا تر (نم) پوری نوری اوبه او بله مهمه رودخانه و هغه ته نه ورلوېږی اود آمو سیند خپله

غټه او لویه بڼه ځان ته نیسی. (پای)

# مطالعه او تفکر

• څنګه چی ډېره زیاته مطالعه فکر، ووسعت او ودې ته نه پرېږدی ډېر لیکل او ډېر لوستل هم د حقایقو معرفت مخه نیسی.

د دنیا ډېره لویه کتابخانه چی بی نظمه او بی ترتیبه وی هغه ارزښت نه لری چی یوه کوچنی منظمه کتابخانه ئې لری.

همدغه راز ډېر زیاته پوهه چی په ذهن او دماغ کی نه هضم دهغولېږو معلوماتو نه لږ قیمت لری چی په جزئیاتو کی ئې ډېر غور اودقت نه وی سوی.

په حقایقو باندی سړی هغه وخت پوهېدلای شی چی د علمیت په قانون پوه شی او په جزئیاتو کی مطالعه ولری.

څنګه چی انسان مطالعی ته ضرورت لری تفکر ته ئې هم لری.

مطالعه او تفکر، د انسان په ذهن کی دوه متضاد تاثیرونه لری چی که یو زیاد شی هغه بل کمېږی.

مطالعه، د سړی ذهن دهغو افکارو او عقاید له تاثیر لاندی راولی چی ممکنه ده د انسان د ذاتی احتیاجاتو سره مخالفت ولری.

آزاد تفکر یعنی دهغه طبیعی سیر او حرکت تعقیب چی محیط او ضروری مسائل ئې د انسان په ذهن کی پیدا کوی د مطالعی

په شان څه خاص شی په ذهن کی نه موجودوی بلکی د فکر کولو

۱۳ مخ دی وکتل شی

د [نجیب] ترجمه

# د انسان د توان مقایسه له ماشین سره

آدم سمیت چی د اقتصاد د پلار په نامه مشهور دی په خپل هغه کتاب چی د «ملتو نو پانګه» نومیږی او په لندن کی چاپ سویدی، او په همدغه کتاب کی ئې د اقتصاد بنسټ د ساینس په ډول طرح کړی دی، ویلی دی چی د یوه قام شته منی لومړی هغه د قام پر مهارت او بیا د هغه په نفوسو پاندی اړه

لری ورو سته له هغه چی څه اقتصادی متخصصین راغلل هغو ګردو ددہ د نظریاتو له دغی برخی څخه انکار

وکړ او پردی خبره پاندی ټینګک ودرېدل چی په اقتصادی انکشاف کی د سړیو پرځای پیسی او ماشینونه

ډیر مهم رول لری دوی ددغی ادعا د ثبوت دپاره د امثال

راوړی چی ماشینونه د کار وخت ډیر کموی او لدی کبله د کار قیمت هم ټیټیږی .

همدا شان دوی دې ته هم اشاره کړی او ویلی دی چی د ماشین په مرسته د هغه کار چی پخوا به سړی په ورځ

کی کاوه ، اوس ئې په یوه او حتی په نیم ګړی کی اجرا کوی .

همدارنګه د اقتصاد پوهانو پردې خبره پاندی

هم زور اچولی دی چی د اقتصاد په پرمختګک کی

سپما هم ډیره ستره برخه لری .

هو ، که دا رښتیا وی چی ماشینونه فقط په هغه وخت کی جوړېدای شی چی پانګه په لاس کی وی او د پانګی د غوځولو

بنسټ فقط سپما ده مګر یوازی سپما که څه هم هرڅومره زیاته هم وی نه څه شی جوړولای شی او نه څه شی پرمخ بیولای شی اودا

فقط انسانان دی چی د نوو او ګټورو افکارو په مرسته سپما د یو تولیداتی شته منی په شکل

ګرځوی سره ددې هم کوم نوی ماشینونه چی د ساینس د پوهانو

او انجنیرانو د بکرو نظریاتو په اساس جوړ سویدی که چیری د نفوسو د اکثریت او کارګری طبقی له خوا د

هغه د مهارت او بلدیت د نشتوالی له حیثه چی ورته په کاردی په کار وانه چول شی نو د محدودو کسانو د

کارد آثارو په شان به باقی پاته شی او نور څه استفاده نه ځینی کیږی داوسنی

اینډستریالیزم ( صنعتی - توب ) تر پرمختګک د مخه د

پاته په ۱۹ مخ کی

## مطالعه او ....

تومنه ذهن ته سپاری، همدغه سبب دی چی ډیر زیاته مطالعه د شخصی فکر د روزنی مخه نیسی ، او سړی څه قدر سطحی او ناپوه کوی .

علما او پوهان هم هغه کسان دی چی ډیر کتابونه ئې لوستی دی، مګر نوابغ او د فکر خاوندان چی د انسانی مدنیت لارښودونکی دی او د بشریت قافله د ترقی خوا ته بیائی، هغه کسان دی چی د جهان په کتاب کی ئې غور کړیدی او د نورو په خبرو کی ئې خپل فکر نه دی بایللی .

[شوپنهاور]




ښاغلی [لایق]

## د ګلو بستر

۲

بیا می ساقی ولید دخیالو نو په خوبو نو کښی
بیا دجنت حوری راته ناڅی په جامو نو کښی

زه د سکندر د آئینی څه ګټا نه یمه
زه هر څه لیدی شمه دښکلو په مخو نو کښی

غرونه که لالو نه شی طلاشی او زما شی بیا
نه ارزی پدې چی ځوانی خاوری کم غمو نو کښی

زه که می پرست نه یم نو څه به شم او څه به یم.
څه پسی به ګرزم د مړو خاورو په رګو نو کښی؟

زانګم دسپوږمۍ په تنا بو کښی له جا زان سره
خیال چی را اسره شی د نشی په جنتو نو کښی

کله چی دیار په سودا پر پوز مه ویده شمه
اوږم په ګلو نو کی را اوږم په ګلو نو کښی

❁———❁

ښاغلی [الفت]

## پکښې ښکاري د مجنون د زړه داغونه

پسرلیه! بیا دې را وړه سره ګلونه
بیا به جنګ کړي د بلبلو فریادونه
سرې لمبې دې ارغوان باندې کړې بلې
د ګل پاڼو کې دې نغښتې سره اورونه
شنې لوخړې پورته کېږي له چناره
په شنو څانګو مرغان څکه کړي شورونه
یا د غرو رغو لمنو اور اخیستې
یا صحرا کړه د فرهاد وینو ګلګونه

د لیلی له خاورو سره لاله شوه پورته
پکښې ښکاري د مجنون د زړه داغونه
د بلبلو په نظر ګلو ته ګوره!
لیلی نه ده چا لیدلې بې مجنونه
سترګې پورته کړه له خوبه رابیدار شه
ویده نه لرې څه برخه له ژوندونه
سوز و ساز د شوق و ذوق ته دې رابولي
چې سحر باغ کې بلبل کړي اذانونه

عبادت کوي که فکر که مخمور دی؟
چې غنچو زوړند نیولي دي سرونه
بیاد لمر زړه کښې پیدا زیات حرارت شه
په جوش راغله بیا د وریځو ډک خمونه

د فلک له شنې مینا صهبا څڅېږي
خلق وائي چې اورېږي بارانونه
د سیندونو مستې ورځ په ورځ زیاتېږي
شپه او ورځ شور و غوغا لري موجونه

دباغ کور بیا ښادي خوشحالي راغله
ونو واچول په غاړه امېلونه
په رنګینو ښو جامو کښې ګلها کاندې
له مستیه شکوي یو د بل هارونه

هیڅ پروا ئې په چاښته ورته ګوری
په اتڼ کښی ښکلو ځانګی ښاخونه
د بهار د نسیم څه رنګه تاثیر دی
ونې راغلی په نغمو کوی رقصونه

دا موسم د ښکلیتوب که د مستی دی؟
له بلبل که له ګل وګړم تپوسونه ؟
د بهار ارمغان ګل که بلبل دی ؟
نغمه ښه ده که د ګلو دیدنونه ؟

پس له څو قرنو د غرو د بلبلانو
ښتنو ته راځی هسی اوازونه
چی پخوا به پسرلی پدې هیوادکښی
لو نل غرونو کښی ښایسته ښکلی لالونه

وریځی نوری وږمی نوری هرڅه نورو
په بل رازو، د اسمان هلته دورونه
سیمرغان او رستمان پکښی میشت وو
د هندیش غره کښی و بل راز تاثیرونه

د اسمان د رڼو ستورو ځلچی وینم
را یادیږی د پښتون شهاب ځلونه

د مرمرو د رخامو خول ماڼیو
د لمر ستر ګی بر ښولی تر پرونه
لمر و بل، سپوږمی وه بله ستوری نورو
ته هم بل شان ایسدلی ای پښتونه!

ښاغلی [فدا]

## ستا په یاد

څوار لسمی شپې، شپه سبا کو له ما ته ستا ښکلی مخ، غټی ستر ګی تورزلفان په تصورکی تلله او راتلله؛ ویل به می چی زما آشنا خو تردغه سپوږمۍ چی اوس په توره شپه وه ټول خلك په خواږه خوب ویده وه؛ یوازی زه وم چی ستا په یاد دخوب پر بستر ناآرامه او ناقراره یوې خوا او بلی خوا ته اوښتم را اوښتم.

هسك ای لوړ آسمان کی سپوږمۍ خپل د آسمان کی لیدل کیږی هم ښکلی او ښایسته دی؛ کله او کوم وخت به د هغه په خوږو خبرو او شیرین وصلت مشرف شم.

ستا په یاد می ټوله شپه سهار کړه، خوستا په وصل

پاته په ۱۸ مخ کی

ښاغلی [رښتین]

# په خندا غوړی خوره شوه

باغ ته ولاړه

د پسرلی په راتلو خوښ شوه آسمانونه
دا په جار چی رعدو وهل ډولونه
د برېښنا تورې را ووته له تېکی
پر غلیم ژمی ئې وکړه تور برېښونه

رعد ډول ورته وهی د برېښنا مخکی
ستورو واچول آسمان کښی اتڼونه
د ښایست له ملکه بیا قافلی راغلی
ور سره دی ښکلی ښکلی سوغاتونه

د جمال پادشاه وتلی په دوره دی
ور سره هم د سرو ګلو لښکرونه
په خندا غوړی خوره شوه باغ ته ولاړه
په شان شا کوی د پېغلو ملېزونه

ژړو ګلو چې راوړی په راغونو
په سندرو ځی بېدیا ته ښکلی جونه
ابشار ځان راغورځوی پسی له لوړو
کوز چې ګوری د سروګلو قطارونه

زانګی بیا قطار قطار راغلی له کښته
زړه ئې غواړی دکابل مېوې باغونه
شنی کوتری دی راغلی نن قاصدی
دی راوړی ئې شاعر له پیغامونه

نورانی سهر وختی د رب ثنا کا
په هزار ژبو ئې کاندی صفتونه
د نشاط عمل راوړی توتکو دی
لږ څه پوه انسان تر اخلی غیرتونه

کارنامه دا دقدرت ده نورڅه نه ده
داچې ښکلی په ګاڼو دی ایوادونه

ګل له حسن نې ورکړی عشق بلبل له
د بلبل ناروکښې اېښې دی سوزونه
د نړۍ ښلل همه واړه لــه ده دی
له قدرته دی په ژویو دا لوړونه

هر یو شی امیداری په دې موسم کښې
د آرزو غوټی چی وسپړی مخونه
د ګلانو هیله څه ده تــازګی ده
سیل د ګلــو د بلبلــو ارمــانــونه

زما زړه کښې ځای نیولی دی آرزو دی
چی نصیب د پښتنو شی عظمتونه
هم ئې ژبه علم پوهه شی اوچته
هم آباد ئې شی دا ښکلی ایوادونه

دا آرزوکړم شپه او ورځ قادره خدایه
ستا دلبار ته می نیولی دی لاسونه
دا جواب می په غوږونو کښې ورو واورېد
چی خبر ئې کړم له دې نوی مضمونه

د هرچا هیلی پوره به شی یو ځلی
په ورو ورو به ورژیړی ارمانونه
خوهله که څوك بېدار لکه بلبل وی
په غفلت او خوب به ښکل نه کړی ګلونه

---

# ستا په ....

شلېر ویلجه

د ۱۶ مخ باته
بریالی نه شوم .
دومــره به وو ایم چی
ژر دی که خدای کول ستا
سره به یوځای، او د بېلتون
دا ترخی ورځیٔ و شپی به
تېری شی .

لکه شمع که ځان وسېزې په اور ته
نو به هله کړی رڼا مینه او کور ته

که د باد په شان دی ځان کړ سرګردانه
نو به و چی کړی خولی له مخ دورور ته
[ الفت ]



## دانسان د توان

مقایسه ....

د ۱۳ مخ پاته

ادبیاتو لپاره ډېر چانس موجود ؤ چې خپل قدرت ته ئې انکشاف ورکړی وای په خاص ډول د معیشت د

تامینولو په لار کې په هغه وخت کې ډېر بـزګران وه چې په ډېر مشقت سره ئې له مځکې خپل د معیشت حاصلولو

دپاره جـدوجهد کاوه په هغه وخت کـې ساینس د وړکتوب په مرحله کې ؤ او ماشینونه چـا نه پېژندله

ددغې کشالې په مقابل کې بهٔدا د تعجب وړ نه وی چې وویل شي چې د (ادم سمیت) پیروان آرانسانانو و پانګې

ته په ډېر اهمیت سره قایل دی .

( تـوماسما تـوس ) د فرانسوی انقلاب غوښتو انکو دغـه دکتوریـن (سول) په موفقانـه ډول رد کړ وایي

انسان کـولای شـی چې بشپړه ټولنه جـوړه کړی هغه دا ثابته کړه چې د نړۍ د نفوسو شمېر تـل مخ پـر زیاتوالی دی دا زیاتوالی

نسبت و خوراکی موادو ته ډېر چابک وی چې په نتیجه کې دغه مسئله دیوې بی موازنګی سبب کیږی او دغه موازنه به د جنګونو

قحطی او آسمانی آفتونو د تلفاتو په واسطه ساتل کیږی .

په اتپرو ۱۱۵۰ کالو کې د ادم- سمیت ددغې روښانه نظریې د تعدیلولـو دپاره چې وایی پـه اقتصـادی انکشاف کې د انسان

توان ډېر اغیزه لری ډېری خبری پیښی سویدی، د اقتصاد دفن د زده کونکو فکر نسبت و انسانی عواملوته د تکنالوژی او پیسو د

عواملو وخواته وګرځېدی کوم علوم چې د هغه په فوکس کې د انسان مطالعه کول هم داخل دی د بنی آدم د نفوذ او قـدرت د

انکشاف په باب کې ئې دوې مهمې نتیجې په لاس راوړی دی له یوې د وظیفې د اجراکولو معیار په واضح ډول د فطرت، وراثت او د

وګړو د استعداد و محدودیت ته اشاره کوی وایی: چې په هرقام او ملت کې داسی کسان ډېر لږ پیدا کیږی چې په فطری استعداد سره

دی په علومو او فنونو کې برجسته کسان یعنی چې په هر نسل کې دی فوق العاده وی ډېر محدود دوی دا یوه فتوا ده چې و بحث کولو ته حاجت نه لری .

دوهـمه موضوع چې پـدې مورد کې بنه تحلیل سویده هغه داده چې د انسان فوق- العاده استعداد د کوم نسلی اجتماعی او اقتصادی طبقې

مخصوص او محفوظ مال نه دی بلکې دغـه شی پر ټول

نفوس باندی وېشل سویدی نو که دغه استعداد انکشاف

ورکړی او پـه ثمر ورسیږی یا دا چې مجهول او بی ثمره پاته شی ؟

په لومړی مرحله کې په هغو چانسونو پـوری اړه

لری چې د کوچنیوالی یا د زلمیتوب په وخت کې د

استعداد لرونکو او بخښل شوو وګړو لپاره موجود وی

نو په پای کې بایدو ویل شي چې انسانی قوه زموږ

محـدوده او قیمتی منبع ده زمـوږ اقتصادی پر مخ

تګ، زموږ په هغه استعداد پـوری اړه لـری چې د

انسان له قدرت څخه پوره استفاده کوی .



د ښځه صدیقي [لودینه] ټولونه

## ښځه څوک ده؟

ښځې ستاسو لباس دی او تاسو د ښځو لباس یاست.

ښځه د کور ډېوه ده ښځې په حکمت کور ودانوي.

ښکلې ښځې سترګو ته خوشحالي ورکوي او نېکه ښځه د زړه جوهر او لویه خزانه ده.

ښځه د ژوند ملګرې او په غم کې شریکه ده.

ښځه، د انسانیت خزانه او د سړي جوړولو لومړۍ کارخانه ده؛ یوازې د ښځې وجود دی چې د پاک عشق او رښتني مینې په حقیقت پوهیږي.

ښځه، خدای پاک د مینې د پاره پیدا کړې ده.

ای ښځې! ته د پاکۍ او تقوی د پاره پیدا سوې یې.

ای ښځې! غواړم چې څه راسره دي، هغه هم تر تا قربان کړم؛ او چې څه لرم هغه هم در ته جار کړم.

په کوم کور کې چې مېړمن نسته په هغه کور کې خوشحالي نسته.

ښځه، بهترینه او ورزوستي آسماني تحفه ده.

ښځه، د خلقت د رازونو خزانه ده.

ښځه، د ګلاب د پاڼې څخه نازکه ده.

خو د فولادو څخه مضبوطه هم ده.

## ښځه د خیال په دنیا کې

اې ښځې! ستا د لطیف جنس خیال تل ستا د خاوند د فکر په فضا کې اوسي او ستا آرزو لري.

شاعران ستا د لطیف او ښکلي اندام د لطف او نوازش انتظار لري ستا د پاره د طلائي سپینسیو جاله ګنډي، او هنرمندان بیا تل ستا پر وجود د سپوږمۍ د اشعې څخه پرده غوړوي.

دریابونه خپلې قیمتي ډبرې ستا د زېور د پاره؛ او باغوان خپل ښکلي ګلان ستا د زینت د پاره تهیه کوي.

ټول کوښښ کوي چې ستا ځواني او ستا آرزو روښانه او تر سره کړي؛ ستا و شخصیت ته ټول احترام لري.

نو ته هم ای مېرمنې!

د دې ټولو نوازشو او احترام په مقابل کې ځان مه سپموه؛ د اولاد په روزنه او صحیحه تربیه کې زیار وباسه او د طبیعت د مظاهرو څخه چې ستا په شاوخوا کې دي خوند واخله او خپله درنه وظیفه څرنګه چې ستا د شان سره ښائي سر ته ورسوه څو په پوره ایمانداري دې خدمت کړي؛ ائ د تل د پاره تا ته د جامعې د مفیدې عضوې خطاب وشي او ستا په حقیقي ښکلا او ګرانښت زیات وب راشي.



# د خندا !!! پلوشې

د محمد ناصر [نصرت]
ژباړه او ټولونه

## ❀ ښکلې مجسمه ❀

یو یهودي مجسمه جوړوونکي د «مرمر» له ډبرې څخه د یوې اطلس کمڅۍ لځې پڅې نجلۍ داسې ښکلې او زړه وړوونکې مجسمه جوړه کړه چې ډېره خوشحاله او شهوت انګېزه وه، او په محضې لیدو سره ئې د هر سړي زړه وړ، او خولې به ئې اوبه ورته کولې؛ دا مجسمه چې یو فرانسوي ولیده وئې ویل:

- که ئې ساه درلودلای د عشق بازۍ او نڅا د پاره بې‌سارې وه.

«یونانی» ئې پر سر لاس ور تېر کړی وې ویل: که هلک وای ډېر به ښه و.

«المانی» چې ورته وکتل وئې ویل: ښکلې ده مګر افسوس چې (آریا) نژاده نده.

«انګلیسی» په خورا ځیر ورته کتلې وئې ویل: باید دغسې یوه ښکلې نجلۍ وموموم ای د (....) ځای د پاره ئې په جاسوسۍ ولېږمه.

«مصري» ولیده او چې سر ئې وښوراوه وئې ویل: زه هم د یونانی په عقیده یم.

«هندي» ته د مجسمې له ښکلیتوب څخه ژړا ورغله او وئې ویل: تر اوسه ئې لا د (بېګانه) یوغ په سپینه غاړه کې نده لوېدلې چې رنګ ئې ژړ سي.

د «ایرانی» په حلق کې نارې وچې سوې وئې ویل: که ژوندۍ او بې مهره وای ما حتماً د ځان د پاره غوښته.

«امریکانی» لیدلې او داسې ئې وویل: چې د زرو ډالرو په اندازه ښکلې او قیمت لروونکې ده.

«ایطالوی» ولیدل او وئې ویل: تر موسولیني ډېره ښایسته ده.

«جاپانی» وویل: که ژوندۍ وای ما به د دې سره واده کړی او هره شپه به مې (فدائی سرباز) ترې جوړولای.

«چینائی» وویل: زه باید تریاک وخورم او مجسمې ته نظر واچوم څو ئې خوند واخلم.

«قفقازی» وویل: تر شراب خوړلو وروسته ئې باید ښایسته مخ ښکل سي.

یهودي چې دا ټولې خبرې واورېدلې خندا ورغلې وئې ویل: پدغه ښوروائې پوری کوی ځکه ستاسو دا ټولې خبرې مفتې وې؛ دا مجسمه به زه د چا د جاسوسۍ په درد وخوري او نه د چا د عشق بازۍ. زه به ئې سر تر نوکه په غوړو

ښه غوښه کړم او دوه، درې کاله به ئې ترخاورو لاندې وساتم، وروسته به ئې د عتیقه آثارو او تاریخي شیانو له رقمه په بازارکې په ښه او ګران قیمت خرڅه کړم .



## بوراني بانجان

یو سړی «معبر» یعنې د خوب تعبیر کوونکي ته ورغلی او ورته وئې ویل : چې برایې مې یو عجب خوب لیدلی دی .

معبر ورته وویل : چې خیر دی وی ؛ څنګه دی ولید ؟

سړی ورته وویل : خوب مې لید چې د اوبش له پوچو څخه بوراني بانجان پخوم .

معبر ورته وویل : یوه پیسه راکه چې د خوب تعبیر دی وکړم .

سړی ورته وویل : که مایوه پیسه درلوده لای خو په هغه به مې بانجان رانیولي بوراني به مې پاخه کړي وای، نو داوبش له پوچو څخه مې څه غوښته ؟ .



## چالاکي

د یوې معتبرې کورنۍ یوې ښځې چې هره ورځ به ئې پر آس یوې او بلې خواته چکر واهه ؛ یو یو نوکر به هم په پسې ؤ . یوه ورځ دا ښځه چې پر آس سپره او نوکر ئې هم نه ؤ اغوستی پر مځکه غوزاره شوې ځان ئې ښکاره شو . دا ښځه چې د غوزاریدو له امله ډېره خجله وه، ژر له ځایه پورته پر آس وغورځیده او چې آس ته ئې ښه قمچینه ورکړه نوکر تـه ئې وویل : آیـا زما چالاکي دی ولیده ؟

نوکر جواب ورکړ چې هو ! ښه مې ولیده لیکن پدې نه پوهیدم چې چالاکي نو میده .

## د سقراط د مرګ حکم

کله چې سقراط ته وویل شوه چې یونانیانو ستا د مرګ حکم کړیدی ؛ نو سقراط ورته وویل : چې طبیعت د یونانیانو د مرګ حکم هم کړیدی .

بیا ورته وویل شوه : کولای شې چې وتښتې او له مرګه خلاص سې .

سقراط وویل : آیا په نړیه کې داسې ځای پیدا کیدلای سی چې هلیه مرګ نه وی ؟ ،



## ډیر ښه یادښتونه

یو سړی چې په سفر تیٔ، نو زیاترو دوستانو ئې د یو، یو شی راوړلو فرمایش هم ورکړ، او ددې د پاره چې هیر ئې نه سی ، یوه، یوه د خالصه نوشته ئې هم ورکړه، خو فقط یو نفر د خپل یاد داښت سره ځه اندازه پیسې هم ورکړلی .

کله چې هغه سړی له سفر څخه بیرته راغی نو دوستانو ئې د خپلو سفارشي شیانو غوښتنه وکړه ؛ مسافر ډیره ، ډیره معافي غوښتې او ورته وئې ویل :

یوه ورځ چې هوا ډیره ښه وه په دریاب کې د کښتۍ پر سر ناست او هغه ستاسو د شیانو یاد-داښتونه مې مخې ته غوړولي او یو، یو مې تر نظر تیراوه، ناڅاپه یو تند باد راالوتی ، هغه ټول یادښتونه ئې دریاب ته واچول . خو فقط د یوه یاد داښت چې پیسې ئې پر سر پرتې وې او باد هم ونه کړای سوای چې دریاب ته ئې وغورځوی شیان مې رانیولي او دادی رامې وړل .

---

(۴)

دعزیز احمد [ ترقی ] ژباړه

# جیوردانو برونو

دا مشهوره عالم پدې خاطر ژوندی و سوځاوه چې دده دپاره ټول سوی وه چې دده راتلګ و ایطالیاته ؤ نېوهېدی چې دعقیدو دپلټنو ددستګاه یعنی وحشتناکه محکمې کار دی. دا وحشتناکه محکمه هغه وخت په ایطالیا او اسپانیاکې دهغو کسانو دتعقیب دپاره وه چې دوی به دکلیسا پرضد کار ونه کول، که څه هم هغه به حقیقت او رښتیا کار ؤ، بیا هم ددوی له خوا نیول کېدی او په مختلفو مختلفو جزاؤ محکوم کېدی لکه جیوردانو چې یو مشهور او حقیقت ویونکی عالم ؤ ددوی له خوا څخه په ډېرو سختو جزاؤ محکوم شو، او دعقیدو دپلټنو دستګاه نه یوازې برونو په سختو جزاؤ محکوم کړی ؤ بلکې په سوو اوزرو کسان ئې نور په اعدام او نورو سختو جزاؤ محکوم کړی وه، چې برونو هم ددغو قربانی سوو دډلې څخه ؤ.

برونو د وینز د ښارته چې په ایطالیاکې واقع دی ولاړ او موسینګو ته ئې په تعلیم او درس ورکولو شروع وکړه، او دده شاګرد یعنی موسینګو وده ته قسم ورکړی ؤ چې هر وخت ته لدې ښاره تللې اول وماته راشه او زما سره دخدای په امانی وکړه.

پدغو ګلمو او تـوطئو سره موسینګو پدې پوه کی ؤ که مبادا برونو دعقیدو دپلټنو ددستګاه خائنانه نقشو او توطئو څخه خبر شی او لکه په ځوانی کې چې تښتېدی و نه تښتی امادې مشهوره ستوری پېژندونکی چې قسم اخیستی ؤ نو مجبور ؤ دمخه تردې چې د وینز د ښاره څخه حرکت وکړی وده ته راشی. اوده کولای سوای چې برونو ددې ظالمانو په لاس ورنکړی.

موسینګو پسله څو میاشتو تعلیمه څخه وویل چې برونو زما په تعلیم کې ناراستی کوی او صحیح تعلیم نه راکوی نه غواړی چې خپلې ټولی لیکنې او خبرونه ماته راکړی او یا ئې راوښیې ددې خبرو په جواب کې برونو ډېر پرېشانه شو او خپله آمادګی ئې د تګ، او د وینز دښار دپرېښولو دپاره ښکاره کړه، او موسینګو دده پرضد دعقیدو دپلټنو ومحکمې ته خبر ورکړ.

د ۱۵۹۳ کال د مې دمیاشتې په ۲۴ نېټه دا مشهوره عالم و نیول شو او ۸ کاله موده ئې په یوه وحشتناکه او خطرناکه بندیخانه کې تېر کړل.

په هغه بندیخانه کې چې ئې برونو بندی کړی ؤ د خونو بام ئې سر لو څخه ؤ. او دوی به ئې په سختو ګرمیو او ژمی به ئې په ډېرو سختو یخو او لندو ځایو کې به تېراوه.

دیوه بندی ژوند پدې بندیخانه کې د ډېر تکلیف اوډ مرګه سره تړلی ؤ. اما ولې دې ظالمانو او ستمګرانو برونو ۸ کاله په بندیخانه کې اچولی ؤ، ځکه چې دوی امیدواره وه چې دا مشهوره ستوری پېژندونکی پخپله د خپلو تعلیماتو دپاره دلاس لاله ورګرځوی اوداودوی

ته یوه لویه کامیابي وه.

برونو په ټوله اروپا کې مشهور او خلکو ده ته احترام کاوه او دغه رنګه به یې

اعلام وکړ چې برونو پخپلو نظریاتو کې تغیر راوستلی دی او خطا لار ئې پرې ایښې ده. ډېرو خلکو دوباره د

کلیسا په نکلو او قصو چې د نړۍ د پیدا ښت په باره کې وې باور کاوه، لېکن برونو ډېر یو دلاوره سړی ؤ او پر

خپله عقیده بانده ولاړ ؤ اما د کلیسا د تهدیداتو او شکنجو نه وکړای سوای چې دده روحیه ورمړه او ماته

کړي او په ډېره سرسختۍ سره به ئې د خپلو تعلیمو د باره صحیحه دلیلونه پیدا کول.

آخر پای هم د عقیدو د پلټنو محکمې دی په اعدام محکوم کړ. هغه وخت چې برونو د محکمې دا رایه

واورېده په آرام ږغ سره ئې وقاضیانو ته وویل:

«ستاسو ددې نظریې په اعلانېدو کې دا ماته ښکاره

سوه چې تر تاسو اوس هم زه د مهربان خدای [ج] څخه ډېر بېر بږم».

او د عقیدو د پلټنو محکمې

خپل حکمونه په لاندې کلمو سره بیان کوي:

«مقدسه کلیسا غواړي چې دا ګناهکار ته بېله وینو تویولو جزا ورکړل شي».

اما دغه حکم یو ډېر وحشتناک حکم د اعدام د حکمو څخه ؤ دا حکم پدې معنی سره ؤ چې یعنې قرباني کېدونکی دی باید ژوندی په اور کې وسوځل شي.

اما عاقبت ئې هم برونو د ۱۶۰۰ کال د فروري د میاشتې په ۱۷ نېټه ئې د اور په کوټه کې ژوندی وسوځه، او دی ئې په ډېر جلال

او دبدبه د اعدام و میدان ته بوتی او دده مخه به ئې د وینو په رنګ سره بېرغونه او د ټولو کلیساوو په ناقوسو کې ناري او ږغونه وه

په سوو کشیشانو او مذهبي لارښوونکو پخپلو رسمي لباسو کې د ښخولو تراني ویلې، او پدې بې ګناه محکوم ئې ژړه جامه چې

د هغه پر مخ ئې د شیطانانو شکلونه په تور رنګ کښلي وه اغوستې وه او بوقي جګه خولۍ چې د هغه پر مخ د یوه داسې سړي تصویر ؤ

چې د اور د لمبو په منځ کې ئې پېچ او تاب خوړی کښلي ؤ دده پر سر کړې وه. په پښو او لاسو کې

ئې زنځیران او په غاړه کې ئې د اوسپنې حلقه وراچولې وه چې دده د لاري تلل په تکلیف شي. دا

ظالمان ددې څخه بېرېدل چې مبادا برونو د ژوند په آخر کې دا خپلې حقیقي نظریې و خلکو ته ووایې

نو ئې ژبه ورپرې کړې وه چې نه وکړای شي خبرې وکړي.

د برونو وروسته او شاوخوا ټوله کشیشانو د حکومت د حکم فرمایانو او اشرافو په مجللو جامو کې حرکت کاوه.

د روم د ښار په زرو، زرو خلک د اعدام په میدان کې چارچاپېر سره راټول سوي وه او هغه سړکونه چې ئې

محکوم د هغو څخه تېراوه او د اعدام و میدان ته ئې بیوی د خلکو څخه په ډک وه او خلکو ودې ته د یوه تماشې

په ډول او په ډېره مینه سره کتل. اما بروکسانو وجود درلودی چې ددې وحشیانه او خطرناکه رفتار سره چې

ددې دلاوره او مشهوره عالم سره کېدی ډېر متنفر او ناآرامه وه. د مخه تر دې چې پر برونو د اعدام حکم

تطبیق کړی یوار ئې بیا ده ته فرصت ورکړ چې د خپلې عقیدې څخه و ګرزي اما دې

۲۵ مخ دی و کتل شی

ژباړونکی غفور [حمیدی]

# علت او معلول

له حکیم بزرګمهر څخه ئې پوښتنه وکړه چې: «کارونه په کوښښ سره دی او که په قضا سره دی» .

ده جواب ورکړ: «کوښښ دقضا سبب دی» .

بزرګمهر پدې لنډه اود معناړکه جمله کی موږ دژوند له لوی قانون څخه چې دعلیت قانون دی خبر وی .

دعلیت قانون و موږ ته وایی چې: هر علت معلول لری او د معلول پېښېدنې هم کېږی ، پدې معنا چې

له هغو کاروڅخه چې نن ئې موږ کوو دراتلونکو حادثو هم یو څه معلومولای سو او دخپل راتلونکی سرنوشت

لږ درک پیدا کوو ځکه د علت له مخې معلول معلو- مېږی. مثلا یوزده کونکی چې نن تکړه ځوان دی خپل

وخت خوشی په شرابخوری اوقماربازی تېروی دده د ننني ورځې له حال څخه دا لږ ډېر معلومېږی چې دده راتلونکی وخت به خراب وی .

معلول تل دعلت پېروی کوی دپرون ورځې کارونه د نن ورځې د کارو پیدا کوونکی دی اوزموږ دسبا کارونه زموږ د نن ورځې

له کاروڅخه پیدا سویدی .

د نن ورځې هر کار ، فکر او احساس زموږ دسبا په کارو او

د ٢٤ مخ پاته

مشهوره اولوی عالم په ډېر تعقیر سره ددوی دا پېشنهاد ورد کړ اوپه ټینګو او محکموګامو سره د تیرو وخواته ور رهی شو هغه

وخت چې ئې د اور دلمبو په منځ کی ودراوه حتی دژوندتر آخرنی لحظې پوری ئې د سینې څخه هیڅ بغ اوفریاد خارج نه شو.

دې لوی عالم داور دلوی کوټې په منځکی خپل ځان وسپاره اما د کلیسا لاربنوونکو نشوای کولای چې دده دلیکنې او نظریو جلوګیری وکړی.

په ۱۸۸۹ کال کی دجیوردانو برونو مجسمه دروم دښار په هغه میدان کی کوم چې دی هورې مړسوی وو، و دروول شوه.

«پای»

فکروکی منعکس کېږی که نن خپل ځان د ناوړو پېښو دجګړې لپاره تکړه کوو سبا ئې بنه دفعه کولای سو

که چېرې خارجي کارونه په موږ کی تاثیر وکی ، هغه تاوان چې له دغو کاروڅخه وموږ ته راپېښ شی دهغو

سره زموږ د مخامخ کېدو په ډول پوری اړه لری.

د هرغم په ایسته کولو کی برې یا ماته موندل زموږ په فکر او کار اړه لری.

ځکه کله چې ماته او ناکامی د ناتوانو روحو دپاره وژونکی زهر دی د طاقتمن روح دپاره د بری موندلو لومړی ځینه ده.

طاقتمن سړی د هرې ماتې سره د برې موندلو په یوه اسرار پوهېږی او په حقیقت کی یو درس زده کوی

اوپدې چوڼ پر خپلو بدبختیو باندې خاندي او په پای کې کامیابه کیږي .

پطر کبیر د الارنیولې او دوني ئي دهغو ماتو په برابر کې چي ددوهم شارل له لاسه ور پیښې سوی وی

ځان ټینګ کړ تر څو چي ئي بري وموند اوپدې چول ئي خپل قول پر ځای کړ چي ویلې ئي وه (دونه ماتي ورم

څودماتي ورکولو لار زده کړم) .

پیښې تل زموږ په ګټه نه وي اوډېر طاقتمن خلګ دناوړو پیښو سره مخامخ کیږي ، خو ناتوانه خلګ

هغه «قسمت» بولي او په ډېره خواری ور تسلیمیږي .

دتقدیر فلسفه دضعیفو وګړو فلسفه ده (قسمت) د ناتوانو دپاره تیښته ده کله چي دونه همت په ځان کې

نه ویني چي د مشکلاتو سره دي وجنګیږي .

که نه وی نو داخونکاره خبره ده چي بخت دهغه چا خونبو نکي دي چي د کار او جګړې طرفدار وي .

انسان دخپلو دماغي قوو دفلج کولو دپاره چول چول وسیلې جوړې کړېدي . یو له دغو وسیلو څخه تاریاك او نور مسکرات . بله ئي چول چول اوهام او

دریم ئي دغه توهم دی چي قسمت او سر نوشت نومیږي .

هغه څوك چي د تقدیر په توهم اخته وي داسي دي

لکه خلګ چي په خوب کې تګ کوی . دوی دخپل ځان هیڅ اختیار نه لري .

پیښې دوی پر مخ بیائي دوی هیڅکله د مشکلاتو د سمولو دپاره له خپل مغز څخه کار نه اخلي .

دوی بخت یو معلومه قوه یا یوعلت چي د کشفېدو نه وي یا یوه پېښه چي د محاسبې وړ نه وی بولي .

خپل بحث د « اسپور-جئون» په پر مغزه خبرو تما موو :

« ما هیڅکله پر بخت باندي اعتقاد نه دی کړی

بلکه دې چي خیال کوم بخت سړی تر خندق تیروی پدې

شرط چي هغه سړی بـه بـه کوی او په غاب کي ئي یوه ټوټه غوښه ورآیږدی پدې

شرط چي هغه بـه د خپلې باغچې او پـسه نبه پـالنه کوی»

« بخت ډېرو هغو خلګو ته مخ وراړوی چي ترشا پسې ځي .

زما په خیال بخت د هرچا د کور دروازې ته ورځي که کار

او کوښښ دروازه نـه کړه ور-خلاصه بیرته ځي او بیا نه ورته راګرزي» .

## دلریانو خبری

ښه میراث :

ډېر ښه شي چي پلرونه ئي خپلو زامنو ته په میراث پرېږدي ښه تربیت او روزنه ده .
[سیسرون]



اخلاق :

اخلاق د نړۍ دلویو محرکه قواؤ څخه دی اود خپلو تظاهراتو په کمال کی انساني طبیعت پخپل ډېر لوړ او عـالي شکل مجسم کوی . [اسما یلز]



ښه اوسه :

داسي و اوسه او ځان داسي کړه چي و هرچاته وویلای شي « لکه زه ځان داسي کړه» .
[کانت]



داخلاقو خاوندان :

د اخلاقـو څښتنان د خپلې ټولنې روح دی . [امرسون]

# په آینده کی به انسان غاښونه نه لري

زماني، زماني دمخه او ډېرې زماني لادمخه چې پېروګانو انسان ښځېله کوډله کی بندي کړی و او دخپلو چالو په پرده کی بې د کوډلي دروازه داسی ور تړلي وه چې ددوی په ګمان به نو موږی انسان هیڅکله نه ددوی له ولي څخه او نه ددوی له دې محدوده کوره څخه راووځي اما انسان دخپلو مغزو د ډېرې والي او پراخوالي په نسبت ددوی د چمو پرده داسی ورڅیری کړه چې پېزوګاني بېچاره ګانی په ځانو هیڅ ونه پوهېدلي او ځیرك انسان داسی له دغی کوډلی څخه چپ او خپ راووت چې نه ئې دځنځیر شرنګی چا واورېدی او نه ئې دپښو کښنګی دچا تر غوږو سو، نو دهغه وخته راپدې خوا چې انسان د پېزوګانو له کوره راووت ګوا کی له هغه وخته څخه د حیوانیت له ساحی څخه د انسانیت و میدان ته راپوري وتی.

انسانان دخپل تاریخ په اولو مخو کی داسی بیان ورکوی چې موږ ښځېلو ابتدائی مرحلو کی د انی مېوې خوړلی کله، کله د بعضو حیواناتو په غوښه مو هم ګذاره کوله یعنی هغه وخت چې به وږی سوو نو به مو هغه ځنګلی او بیابانی حیوانات او مرغان چې به زموږ په وس وه نیول او غوښې به مو په غاښو او چمبو څیرلی نو بیا به مو هغه غوښې او مې خیشتې خوړلی او ځانونه به مو پدغه لار سره مړول.

انسانان دخپل تاریخ په بل ځای کی وایی: هغه وخت چې زموږ نیکه ګانو غوښې اومې خیشتې او بې اوره خوړلی، علت ئې داوو چې دوی د حیوانیت و کورته نژدې او مغزو یې انکشاف نه و کړی، اما اوس چې زموږ ذهنونه تر دوی په ډېرو شیانو پوهېږي پدې هم پوهېږو چې باید غوښې تر ښکار وروسته پر اور باندی وګړولشی او بیا ئې په خېړو او غاښو څیری او وئې خورو.

دلته دا باید ووایو چې اوس زموږ غاښونه نسبت زموږ د نیکه ګانو غاښو ته هم هیڅ او هم کوچنی سوی دی او ددوی غاښونه خورا قوی، تېز او اوږده وه ځکه چې دوی هرڅه په څیر له او ږې کوله، دزامی غاښونه ئې چې د کوټلو وظیفه لري ډېر په قوت کی وه او هرڅه ئې په میده کولای سوای.

اما موږ هغو ته اړ که دوی چې کار ځینی اخستی میده کول او کوټه کول نشو په کولای.

انسانانو ښځېل بشری تاریخ کی خوراکی ډېر ډېر بیا بانونه نور هم کښلی دی، اما موږ ئې د نوموړی تاریخ هغه کیفیت چې په آخری پاڼه کی د آخری حاشیې په وروستی ځنډه کی کښل سوېدی راوړو

انسانان ښځېل تاریخ کی وایی چې زموږ مادی او معنوی کیلیت زموږ د نیکه ګانو په شان نه دی مثلاً ددوی هغو ذهنو او مغزو انکشاف نه و کړی یو ئې تندی او د جمجمې منحنی حصه د شا پر خوا ځرمه وه.

برعکس ئې چې خوراکونه وحشیانه او د حیواناتو په ډوزوه نوئې غرلی او د خولی شاوخوا برخو پوره وده کړې اواوربوزی ئې د مخ پرخوا راوتلې وه.

اوس وینو چې زموږ مغزو انکشاف کړی او وحشیانه خوړ کمو پری ایښی دی ځکه مو تندی راوتلی او وربوزونه امو ننوتلی دی. دوی چې به حیوانات ښکار کړه بیا به ئې په څپړو څیرل او وروسته ئې دیو لمبې پر سر هغه غوښې کړ ولې نو بیا پخپلو تېرو غاښو او نېښو ئې هغه څیرلې او خوړلې.

دلوړو خبرو پر بنا معنوی په خپلو غاښو شیان پرېکول څیرل، ماتول او میده کول ځکه ئې غاښونه تر ننني انسانانو خوراغښ، تېز او اوږده وه اما اوس چې موږ خپل ټول انتظام د برق په آلاتو او د اټوم په انرژی دی نو مو غذا هم په نومونو طاقتو پخیږی او د خوړ که په وخت کې ئې فقط د یوې کاچوغی او پنجی سره خولې ته یوسو هوري هم چندانې د غاښو زور نه بائندی تېریږی فقط د خولی د ناړو په ذریعه هغه نرم او معدې ته ځی ځکه مو نو غاښونه خورا آرام او د انکشافه ولوېده او وینو ئې چې زمانه پر زمانه زموږ غاښونه واړه او پخیږی.

پسله څه زمانی څخه چې د خوړ که موږ له منځه ولاړ شی او د حفظ الصحی د مراعاتو سره سم به د ضروری ویټامینو څخه یوډول ګولی جوړې شی او هغه یاد پلمپت په شکل زبېښو او یا به ئې ژوندی تېر وو. ځکه چې یدغه مرحله کې غاښونه په کار نه لویږی نو د «لامارک» د قانونه سره سم چې وائی د استعمال هغه عضوه قوې اما که مستعمله نشی نو هغه عضوه له منځه څخه وځی پسله څه زمانو څخه غاښونه له منځه څخه ځی او بیا به نو انسانان په آینده کې غاښونه نه لري.

«تاکنه»

«له هري خوا»

د [غرزی] ژباړه

# هغه وړانګې چې فلز په بخار اړوی

دلندن د فزیك د ټولنی په نندارتون کې یوه ټوټه قهوه ئې رنګه مکعب شکله د ننداري د پاره ایښوول سوې وه چې «مادون قرمز» ېیخی قوی وړانګې ئې تولیدولای سوای.

دا د «لاستر» یوډول انقلاب دی چې لومړی وار په امریکا کې کشف سو او اوس ئې د هر ست د الکترونیك پلټنو د سرویس پوهان د مشابه ډول په جوړولو بریالی سویدی.

دانوی ډول لاستر یو وړوکی مکعب دی چې د «کالیون ارسینیك» پنامه د یوه فلز له ترکیب څخه جوړ شویدی.

د برېښنا د جریان په برقرارولو سره ددې جعبې (کوتي) له داخل څخه مادون قرمز وړانګې را پیدا کیږی. دې نکتې د پوهانو په منځ کې ډېر هیجان را پیدا کړیدی ځکه تر مخنیو لاسترو ډېر الکتریکی شارژ ته د کار د شروع کولو دپاره اړې درلوده.

ددې سره چې تراوسه ئې د لومړی کشف تر دوو کلو ډېر وخت نه تیریږی، په امریکا کې په ملیونو ډالرونه ددې لاستر په شاوخوا کې د څېړنې دپاره په نظر کې نیول سوی دی او د خرڅلاو د چارو متخصصینو ئې څرګنده کړیده چې تر ۹۷۰ کال پوری به هر کال

باته د پښتي په ۳ مخ کې

# د کمال تصویر

کله چې آفرینش نوی شی او ستوری خپلې لومړۍ وړانګې خپرې کړې، نو روحانیستا یونکې په آسمان کې سره راغونډ شې او په ګډه دا سندرې وایې:

« واه، واه، د کمال تصویر؛ واه، واه غیر ناقص مسرت » ناڅاپه له دوی څخه یوه ناری کړه: « داسې معلومه ده چې د رڼا د ځنځیر په کوم ځای کې شکست سته او له ستورو څخه کوم ستوری ورک سوی دی ».

د بربط زرین تار له ځایه راکښته شی، سندرې بندې شې او ټول وارخطا راپاڅې او ناری کړې « هو، هو! هغه ورک شوی ستوری د ټولو ستوریو ښه ستوری و او ټول آسمانونو ښایست هم په ده وو ».

له هغې ورځې راهیسې چې په هغه ستوري پسې تلاښ جاری دی یو داسې زوږ او شور له دې ځایه بیا تر هغه ځایه پورته دی چې وایې:

« دنیا په هغه ستوري کې خپل مسرت ورک کړی دی ».

یوازې د شپې د توری تیارې په خاموشۍ کې ستوری موسکیږي او یو د بل په غوږ کې وایې چې: « دا تلاښ خوشې دی په هر ځای کې مبقطع تکمیل شته ».
«ټاګور»

---

د ۲۸ مخ باته

۴۵ ملیون لیره سترلنګه له دې لاستر څخه خرڅ شي.

د دې خواږ خېز دې ټول کوښښ دلیل دادی چې نوی لاستر د ټولو مهمو او بېشمارو مصارفو اړونکی دی.

له دې لاستر څخه حاصلې سوې وړانګې کولای شي چې ټول سخت فلزونه په بخارو اړوي او دا خاصیت ئې همداوس تر ازمویښتو بریالی راوتلی دی.

د نوی لاستر څخه په شیمیائی فعل او انفعالو کې او په جراحی عملیاتو کې هم د ډیرې ګټې اخستل کېدلای شي خو ممکنه ده چې د مصرف مهم امکان ئې د ارتباط په څانګه کې وي.

همداوس د مصنوعي سپوږمیو د پاره د لاستر د رادار د جوړولو نقشې تر کتنې لاندې دی.

د لاستر یوه وړانګه په ملیونو تلیفوني مکالمې مخابره کولای شي ځکه د لاستر وړانګې لکه دا د یوې څپې تر کنټرول لاندې راوستل کېدلای شي.

کوم څه چې پورته اشاره ورته وسوه د قوی لاستر د دا نګو په کار کې چې د (کالیون ادسینیك) له کوټې څخه راوزي کېدلای شي ځکه د الکتریسته په تغیر سره له نوی لاستر څخه حاصلې سوې وړانګې هر ټول چې ئې زړه وغواړي تغیر کولای شي.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(MAY) 1968

GOVERNMENT PRESS

مؤسس: محمدولي [ زلمی ]

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال دوهمه ګڼه   پرله پسې ګڼه ۹۴

د ۱۳۴۷ لمریز کال د ثور میاشت

کالنی بیه

په کندهار کې [۳۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کې [۳۴] د

په دباندنیو هیوادو کې یو ډالر

د کندهار دولتي مطبعه